# د غره اتل

ليکوال: ايفن پرفوف

ژباړه: فضلربي شېرزاد

کوچنې ګیدړ لولو ډېر هیجاني وو. سبا ته د (غره اتل) لویه سیالي ترسره کېږي. ډېر غښتلي او زړور خلک او حیوانات به په کې برخه اخلي.

لولو غوښتل چې سیالي وګوري او دنړۍ دمشهورو اتلانو سره مخ شي. هغه په ډیر احتیاط سره نقشه مطالعه کړه. سیالي به دغره په څوکه کې د بوران په نامه جادوګر کونګ په میدانونو کې ترسره کیږي..... لولو سبا ته اوږد سفر په وړاندې لري......

نن لولو ته دشپې تر ناوخته خوب نه ورځي. هغه د غره لیرې ځوکې ته ګوري او دسیالۍ خوبونه ویني.

هغه دسهار رارسیدو ته ډیر لیواله دی

سهار شو هغه راپاڅیدو، خپل غاښونه یې په برس پاک کړه او سباناري یې وخوړو. دهغه په مخ کې اوږده لاره پرته وه نو ځکه یې ښه خوراک وکړو- سباناري چې موریې ورته تیار کړی وو ډیر خوندور وو.

لولو له خپلې مور سره ژمنه وکړه چې احتیاط به کوي او ځان به د شپې له تیارې څخه مخکې کور ته رارسوي او دغره په لور یې منډه کړه. هغه دخپل کورتر څنګ له کروندو څخه تیر شو، د ډبرینو غونډیو تر څنګ روان وو او دسیند څخه دتیریدو پر مهال یې ناڅاپه دڅا چیغې واوریدې چې مرسته یې غوښتله

لولو شاوخوا وکتل او یوه ګونګټه یې ولیدله چې سیند ته غورځیدلې وه. د سیند غاړې ډیرې ژورې وې.

.هغې په اوبو کې په ناآرامۍ سره خپلې پښې ښوورلې

لولو شواوخا وکتل چې لرګې یا بل څه راپیدا کړي خو هیڅ هم په لاس ورنه رغلل. وخت ډیر لږ وو. لولو خپله لکۍ یخو اوبو ته ورښکته کړه او ګونګټې ته یې نارې کړی : زما لکۍ ونیسه.

لږ وخت وروسته ګونګټه په چمن کې پرته وه او لمر ته یې ځان وچولو. ډیره ستړې وه خو په دې خوشحاله وه چې وژغورل شوه. لولو هم ستړی وو خو د دمې لپاره یې وخت نه درلودو. خپله لکۍ یې کلکه ونیوله چې په اوبو کې لمده او درنده شوې وه او د سیالۍ په لور یې منډې کړې.

لږ وروسته يې يوه سويه وليدله چې ژړل يې. له هغې څخه يوه دستکشه ورکه وه او نه پوهيده چې څه ډول يې پيدا کړي.

لولو وارخطا وو چې ژر سیالۍ ته ورسیږي خو پریکړه یې وکړه چې دسویې سره مرسته وکړي. خپله پوزه یې ښکته کړه او د سویې د دستکشې په لټه کې شوه. سویه هم دې هیله ورپسې روانه شوه چې دستکشه یې پیدا شي.

لږ وخت وروسته لولو دستکشه پیدا کړه چې دلارې په څنګ کې پرته وه. د ګیدړ له پوزې څخه هیڅ شی هم نشي پټېدلی. سویې له خوښۍ څخه په ټوپو شوه او په موسکا سره دستکشې په لاس کورته لاړه او لولو په تیزۍ سره دغره په لور روان شو.

لولو دغره په لاره روان وو چې درې اوروژونکي میږي په مخه ورغلل چې دروازه یې په شاکړې وه او دغره په سر کې پوستې په لور روان وه. میږیان له دغې پوستې څخه ځنګل څاري چې اور وانخلي .

دراوزه ډېره درنه وه او میږیانو ورلاندې په سختۍ سره ساه اخستله.

سره له دې چې په لولو اوس هم ناوخته وو خو پریکړه یې وکړه چې له هغوی سره مرسته وکړي. هغه دغه درنه دروازه واخسته او دمیږیانو سره یو ځای یې غره ته پورته کړه.

بالاخره هغوی د اوروژونکو میږیانو د خار پوستې ته ورسیده او دروازه یې ځای په ځای کړه. میږیان ستړي ستومانه په ځمکه کیناسته. لولو هم ستړی وو خو ددمې لپاره یې وخت نه درلودو- دغره دخوکې په لور په روان شو.

کله چې د غره څوکې ته ورسیدو نو سیالي پای ته رسیدلی وه. مات غشي، ننبې او تورې په ټول میدان کې پرتې وی .... خو ټول اتلان تللي وو

لولو خپه په ځمکه کیناستو. هغه ډېره ارزو درلوده چې سیالي وګوري او دسترو اتلانو سره مخ شي خو هر څه ترینه تیر وو

ناڅاپه هغه د وزرونو اواز واوریدو. هغه پورته وکتل او جادوګر کونګ یې وکتو چې په مخ کې یې ولاړ دی

(لولو مه خپه کیږه. ستا نه هیڅ شي نه دی تیر شوی. وګوره، ما ستا لپاره یو ځانګړی ځیز راوړی). کونګ لولو ته د (غره اتل)

مډال ورکړو چې دسیالۍ تر ټولو ستر مډال وو.

لولو په حیرانتیا سره وویل: (خو .... ولې؟ ما خو داتلولۍ کوم ستر کار نه دی کړی.)

بوران موسکې شو او ویې ویل: ( له هغو کوچنیو کارونو څخه چې تا نن ورځ ترسره کړي بله ستره اتلولي څه کیدی شي؟)

( ستا څخه هغه سیالي چې تا یې دلیدو ارزو درلوده په دې خاطر پاتې شوه تر څو د ګونګټې سره، د سویې سره او د میږیانو سره

مرسته وکړې. ته دغره اصلي اتل یې )

لولو کور ته له ماښامنۍ ځخه دمخه راورسیدو او مور او پلار ته یې کیسه وکړه.

په کور کې ټول خوښ وه او پر هغه یې ویاړ کولو. د ماښامنۍ ځخه ورسته لولو خپل کټ ته ستړی خو خوشحاله ولاړو. هغه ښه خوب ته اړتیا درلوده .... کیدای شي چې سبا ورځ به ورته نور ستر کارونه په تمه وي.